# شریعت
ورځپاڼه

د افغانستان اسلامي امارت مرکزي نشراتي ارګان

د تأسیس کال ۱۳۷٤ هـ.ش/ دوهم پړاو / ٦۹۹ ګڼه / چهارشنبه ۰۵ رمضان‌المبارک ۱٤٤٦ هـ.ق / د کب ۱۵مه ۱٤۰۳ هـ.ش /۰۵ مارچ ۲۰۲۵ میلادي





مجاهد:

## کار پروژه تاپی در داخل کشور به شدت ادامه دارد

مولوی ذبیح‌الله مجاهد، سخنگوی امارت اسلامی می‌گوید، کار تمدید پایپ‌لاین پروژه تاپی در داخل خاک افغانستان به شدت ادامه دارد.

دفتر مطبوعاتی مقام ولایت هرات گفته که تلاش مقام‌های محلی این ولایت برای سرعت بخشیدن به کار پروژه تاپی در این ولایت افزایش یافته است.

در نامه خبری نشر شده از سوی این دفتر آمده که تطبیق این پروژه در چندین فاز از جمله این تلاش‌ها است.

به گفته دفتر مطبوعاتی مقام ولایت هرات رهبری این ولایت متعهد به تسریع روند کار ساخت پروژه تاپی بوده و سهولت‌های لازم را نیز در این راستا فراهم کرده است. ص۳

# اقتصادي کمېسیون د معدني توکو مسوده تأیید کړه



د ریاست‌الوزراء اقتصادي معاونیت د اقتصادي کمېسیون د تخنیکي کمېټې نوبتي غونډه پرون د ارګ په مرمرینه ماڼۍ کې تر شوې ده.

یاد معاونیت ویلي، په دې غونډه کې د مالګې پالیسۍ او معدني توکو د پروسس او صادراتو پالیسۍ مسودې تأیید شوې دي.

په دې غونډه کې دغه راز اړوندو وزارتونو ته سپارښتنه شوې، چې د یادو پالیسیو په مسودو کې د اوبو او انرژۍ وزارت نظر ته ځای ورکړل شي او د وروستي تصمیم نیونې په موخه یې اقتصادي کمېسیون ته وړاندې کړي. ۳مخ

## ځوابي برید کې د پاکستان د پوځ یوه پوسته له منځه وړل شوې



په تورخم کې ځایي سرچینې وایي، چې افغان دفاعي ځواکونو د تېر ماښام په ځوابي برید کې د پاکستان پوځ یوه پوسته له منځه وړل شوې او اته پوځیان یې وژل شوي دي.

دغې سرچینې زیاته کړې، په دې نښته کې افغان لوري ته هیڅ زیان نه دی اوښتی او د افغان دفاعي ځواکونو ځوابي برید په بریالیتوب ترسره شوی دی.

دغه نښته په داسې مهال رامنځته شوې، چې په دې وروستیو کې د دواړو هېوادونو ترمنځ په تورخم کې د اغزن تار ته څېرمه د افغانستان پوستو جوړولو پر سر ترینګلتیا دېره شوې ده.

## کونړ کې د ډبرین دېوال او کانکرېټي سړک چارې پیل شوې



د ټولګټو وزارت په کونړ کې د ۷.۶ میلیونه افغانیو په ارزښت د سړکونو د ساتنې په موخه د ډبرین دېوال (بولډروال) او د کانکرېټي سړک د روغولو د چارو له پیل خبر ورکړی دی.

د یاد وزارت ویاند محمد اشرف حق‌شناس ویلي، چې د کونړ په نړۍ او شیګل ولسوالیو کې د ۳۵۰ متره ډبرین دېوال... ۳مخ

## کابل ښاروالۍ نوې نرخنامې وېشلي




کابل ښاروالۍ وایي، د روژې لپاره یې پر هټۍ والو نوې نرخ پاڼې وېشلې دي چې هیڅوک سرغړونه نه شي کولی.

د کابل ښاروالۍ استازی نعمت الله بارکزی وایي، د نورو کلونو په څېر یې پر هټۍ والو نوې نرخ پاڼې وېشلې او پر بازار یې د څار لپاره ټیمونه ګومارلي دي.

بارکزی د توکو بیو کې... ۳مخ

## سرمقاله



### د جګړې او دښمنۍ لامل څوک دی؟

له تېرو دو ولسو ورځو راهیسې د تورخم مهمه لار د پاکستاني ځواکونو له لوري تړل شوې چې طبعاً دواړو خواو سوداګرو ته یې کروړونه تاوان رسولی، دا لاځه په همدې ترځ کې دوی زموږ پر هغو ځواکونو هم وخت ناوخته بریدونه کوي چې له ډیورنډ کرښې سره نږدې خپلو څوکیو کې پر دندو بوخت دي. د پاکستاني پوځ مهمه نیوکه داده چې وایي افغاني لوری دې له پاکستاني جال او موانعو لیرې اوسي. په هر صورت زموږ لپاره مهمه داده چې په همدې حال کې بیا هم د پاکستان چارواکي شپه ورځ لګیا دي هم په کور د ننه د خپل هېواد دوه سوه میلیونه مسلمانان له موږه خپه کوي او هم په نړیوال ډګر کې زموږ د بدنامولو هڅه کوي. ځکه خو اوس زموږ هیله او غوښتنه داده چې لږ تر لږه جارح او یرغلګر لوری خو باید وپېژندل شي. یعنی د پاکستان عوام، خواص، دیني علماء، مخور، سوداګر او خصوصاً زیانمن وګړي باید دومره خو وپوهیږي چې ستونزه په چا او کوم لوري کې ده؟ لومړی خو هیڅوک باید دا خبره له یاده ونه باسي چې له آمو تر اباسینه د افغانانو خاوره ده او احمدشاه بابا پر همدغه سیمه د افغانستان په نامه یو دولت تأسیس کړی و. دا چې بیا انګرېزانو یرغل وکړ او د نورو هېوادو په شان یې زموږ هېواد هم اشغال او تر ډېرو جګړو وروسته مو څه برخه ترې ازاده او څه ورسره پاتې شوه چې د هندوستان د وېشلو پر مهال یې هغه هم د پاکستان په نامه نوي هېواد ته وسپارله، هیڅکله د پاکستاني حکومت لپاره د کومې شرعي قبالې حیثیت نه شي لرلی، بلکې دا له شکه پرته یو داګیز غصب دی چې یوازې د زور په منطق یې خپل بللی شي- ځکه خو لانجې سر له همدې ځایه پیلیږي او همدا مسئله ګرد افغان ولس ته دومره مهمه ده چې حتی یو فرد هم له دغې دعوې نه شي تېرېدلی. پر دې اساس نو د پاکستاني واکمنو دا دلیل چې یاده خاوره دوی ته انګریزانو ورکړې ده، قطعاً د منلو نه ده او همدا پر افغانستان د پاکستان له خوا لومړی تجاوز دی، ... ۳مخ

## د ملي دفاع وزارت له پوځي او مسلکي زده‌کړو ۲۰۲ تنه منسوبین فارغ شول



د ملي دفاع وزارت د عبدالله بن مسعود «رض» د جګړه‌ییزو ګډو زده‌کړو له قوماندانۍ څخه د بېلابېلو قول‌اردوګانو او قطعاتو ۲۰۲ تنه ځوان منسوبین له پوځي او مسلکي زده‌کړو فارغ شوي دي.

یاد وزارت وایي، چې دغه ځوان منسوبینو د جګړه‌ییزو ځواکونو ښوونځي د «ډي‌سي» توپ حفظ او مراقبت،... ۳مخ

## آغاز توزیع پول عصریه برای ورزشکاران



ریاست عمومی المپیک، تربیت بدنی و ورزش کشور روند توزیع پول عصریه برای ۳ هزار و ۷٦۷ ورزشکار را در کشور آغاز کرد.

قرار است در این روند به ورزشکاران تمامی فدراسیون‌های ورزشی کشور به ارزش ۵۰ میلیون افغانی پول بدیل عصریه پرداخته شود. ص۳










وزارت زراعت:

## از ۳ سال بدینسو از قطع جنگلات در پنجشیر جلوگیری شده است



وزارت زراعت، آبیاری و مالداری می‌گوید، از قطع جنگلات در بیش از سه سال حاکمیت امارت اسلامی، در ولایت پنجشیر جلوگیری بعمل آمده است.

وزارت زراعت، آبیاری و مالداری به نقل از ریاست ولایتی‌اش در پنجشیر گفته که در هفت ولسوالی این ولایت بشمول مرکز آن، جنگلات طبیعی در مصونیت کامل قرار دارد.

آمر جنگلات ریاست زراعت، آبیاری و مالداری ولایت پنجشیر افزوده که از ... ص۳

# د تورخم دروازې پر سر ناندرې

**سلطان جان خاکسار**

ننګرهار کې ډیورنډ فرضي کرښــې ته څېرمه تورخم کې افغان او پاکســتاني پوله ســاتي یو ځل بیا سره نښــتي دي. ویل کېږي چې ورمه شــپه هم د درنو او سپکو وســلو ګوزارونه شوي او یاده جګړه ۴ ساعته غځېدلې ده.

د کورنیــو چارو وزارت ویاند مفتــي عبدالمتین قانع هم ویلــي چې برید لومړی پاکســتاني لوري کړی او افغان ځواکونه د ځان او خپلې خاورې دفاع ته اړ شــوي دي.

تورخم کې د افغان حکومت کمیســار ملا عبدالجبار حکمت وایي، د ننګرهار د ولایتي ادارې د مرســتیال مولوي عزیزالله مصطفی په مشرۍ پلاوي په تورخم کې له پاکســتاني چارواکو له پلاوي سره چې مشــري یې پوځي کمیسار کرنل وقاص کوله خبرو کې د ســتونزې د اوارد مهالي حل وراندیزونه کړي. د ننګرهار د ولایتي مســؤلینو له قوله، پاکســتاني لوري ژمنه وکړه چې تورخم به ۲۴ ساعته پرانیستی وي او د دواړو هېوادونو په ســوداګرۍ کې به زیاتوالــی راځي. افغان لوري ټینګار کړی چې په راتلونکي کې هم باید د دې دروازې په تړاو پلمې ورکې شــي.

د افغانستان د ســوداګرۍ خونې چارو ســمبالي محمد یونس مومند له بي بي سي ســره خبرو کې ویلي، د لارو تړل کېدو په پایله کې د افغانستان او پاکستان ترمنځ سوداګري ۸۴ ســلنه کمه شوې. هغه وویل افغانســتان د خوندي ټرازیټي لارو او ســوداګرۍ لپاره تر ډېره په منځنۍ اسیا تکیه کړې.

لــه بلې خوا د تورخم د دواړو خواوو مېشــتو اوســېدونکو ګیلــه کړې چې د دې جګړو له امله وېرېدلي او ســر او مال یې په خطر کې دی. له بلې خوا له تېرو لسو ورځو راهیســې دواړو خواوو ته راغونډ مســافر وایي چې لس ورځې کېږي خپل کور کلي ته د رســېدو انتظار باســي. که څه هم په دې نښــتو کې مسافرو ته د سر زیان نه دی رســېدلی خو ویل کېږي چې د دواړو غاړو مســافر خوندي ځایونو ته انتقال شوي دي.

د تورخم د پرانیســتې په تړاو د افغان او پاکستاني لوري خبرې څو ځلې بې پایلې پای ته رسېدلي او سمدستي خبره تر فزیکي جګړې رسېدلې ده. په هغو ویډیوګانو کې چې په خواله رســنیو کې لاس په لاس کېږي، افغان پوله ساتي ځواکونه لیدل کېږي چې نعرې وهي چې د پاکســتان د تورخم کمېسارۍ یې لاندې کړې او ټول کارکوونکي او پوځیان په تېښــته بریالي شوي دي.

ورتــه وخت کې د خیبرپښــتونخوا وزیر اعلا علي امین ګنډاپور هم پېښــور کې د اسلامي امارت د کونســل حافظ محب الله لیدلي، د تورخم پولې په مشکلاتو او نورو موضوعاتو غږېدلي او د پولې زر تر زره پرانیســتو یې ویلي وو.

د دواړو غاړو مســافرو بي بي سي او نورو ځایي رسنیو ته ویلي وو چې مېرمنې او ماشــومان ورسره دي، نږدې هوټل نه پیدا کېږي، د خلکو ګڼه ګونه بېخي زیاته ده، اوبه، خواړه، چاې او د استوګنې ځای نه شته.

اسوشــیتید پریس خبــري اژانس رپورټ ورکړی چې لــه ۵۰۰۰ ډېرې پر توکو بار لارۍ د تورخم دواړو غاړو ته ولاړې دي. ســوداګرو ویلي د سبو او مېوو په ګډون ډېر هغه توکي چې باید پر وخت رســول شوی وای پر لار د ځنډو له امله یې زیان لیدلی.

د خیبر د ســوداګرۍ خونې مشر یوســف اپریدي په لنډي کوتل کې خبریالانو ته وویل د تورخم لارې دا وار تړل کېدو ســوداګرو تــه ۱۰ میلیونه ډالره زیان اړولی دی. هغه وویل که لار همداســې تړلې پاتې شي د لا نور زیان شونتیا شته.

اوس اساســي پوښــتنه دا ده چې آیا د دې لارې تړلتیا او د ډیپلوماســۍ پر ځای د زور خبرې ګټه کوي او که نه؟ او د تورخم یا په کل کې که ووایو د پاکســتان بدیل موږ ته څه کېدلی شــي؟ البته موخه مې دا چې موږ څنګه او کله یو بل ســوداګریز او اقتصادي بدیل موندلی شــو او هغه به څوک وي؟

دا خو تر لمر هم روښــانه ده چې اســلام اباد تل موږ له خوږې ګوتې نیولي یو او همدې اړتیا څخه یې تل سو استفاده کړې ده او لا یې هم کوي. اسلام اباد آن زما د بزګر له خولو او د ورغوي له تناکې سره هم خیانت کوي او په سپکه ورته ګوري.

آیــا همدوی نه دي چــې په وړو بهانو او حتی په قصــدي ډول هغه وخت لارې د افغان ســوداګرو پر مخ تړي چې افغانســتان کې د مېوو دانو وخت را ورسېږي. د همدوی له لاســه زموږ جنتي مېوو په نیمه بیه او حتی په هغه بیه چې بېرته بزګر ته خپل مصرف هم نه پوره کوي؛ خرڅوي.

د دې کارونو تر شــا پاکســتان ګڼ نور ســتراتیژیک او سیاســي اهداف هم لري. پاکســتان لوری افغانســتان ته داســې ورفهمــوي چې ګوندې لا هــم د دوی تر اقتصادي او ســوداګریز ګورز لاندې یو. د دې لارې د بندېدو یو بل خو پټ اړخ دا دی چې په دې پوچو اعمالو ســره اســلام اباد د افغانستان اسلامي امارت سیاسي فشار مشاهده کړي.

پاکســتان باید وپوهېږي چې د افغانستان اسلامي امارت او افغان ملت هېڅ ډول فشــار ته غاړه نه ږدي او ورځ په ورځ په ځپلو ظرفیتونو کار کوي او لرې نه ده چې یوه ورځ به په بشــپړه توګه اقتصادي خپلواکۍ ته ورســېږي. له یوې خوا پاکســتان غواړي افغانستان له ځان سره د یوه اقتصادي او سوداګریز ملګري په توګه وساتي، خو بله خوا پاکســتان د افغانستان د سوداګرۍ پر وړاندې تل ستونزې جوړې کړې او افغانســتان په لــوی لاس دې ته مجبــوروي چې پر بدیلو خو قــوي همکارانو کار وکړي. فکر کېږي چې پاکســتان اوس د افغانســتان ـ چین او هندوستان ګډه اقتصادي دوستي هم نه شي زغملی.

پر فرضي پولو او کرښــو که تل د شخړو تاریخ وکتل شي، پاکستاني لوری ملامت ښــکاري او د افغــان ځواکونو له لوري یې پــه دفاعیه او ځوابــي برید کې غابښ ماتوونکي شکستونه خوړلي دي.

# د روژې حکمتونه

**ژباړه: مولوي نورالحق مظهري**

په اسلام کې د هر عبادت لپاره حکمتونه ســته چې ځینې یې په صریح نص باندې معلومېــږي ځینــې یــې په عقــل باندې معلومېــږي او ځینــې یې پــټ وي خو وروســته تر ډېرو تحقیقاتو او پلټنو یې یو څه درک لګېږي.

په ټولــو عباداتو کــې مهــم حکمتونه دا دي: د نفســونو تزکیه، د نیمګړتیاوو څخه د نفســونو پاکوالــی، د چټلیــو څخــه د نفسونو صفاوالی، د انساني کمال لپاره د نفســونو جوړوالی، ملأ اعلی ته د نفسونو نژدېوالــی، د حیوانــي خلقتــي کثافــت او دروندوالي څخه د انســاني نفســونو را اېســتل او په اســماني پاکــو معنویاتو باندې یې تغذیه کول.

اسلام انسان ته د داســې منځني مخلوق پــه ســترګه ګوري چــې هــم د ملکوتي صفایی او هم د حیواني چټلی اســتعداد لــري، هــم د مځکني تاریکــی او هم د آســماني نورانیت وړتیا لري او انسان ته عقــل، اراده او تمییــز د دې لپاره ورکول شــوی چې د اوســني دنیوي ژوند او را روان اخروي ژوند لپاره په فکر کولو سره یا ځــان نیکمرغه کړي او یا یې بدمرغه.

خو په اسلام کې هر هغه عبادت لره چې سم وشي په انســاني نفسونو کې مختلف آثار شــته چــې د عابدینو د رښــتینولی، فکرونــو راټولوالــي او د خپــل معبود د اســتحضار له مخــې پر ګڼــو حالاتو او اقسامو باندې مشتمل دي.

دا معلومــه خبره ده هغــه عبادت چې په ســمه طریقه وشي، پوره یې حق آداء شي او پــه کولو کې یې تنها الله او د هغه رضا مد نظر وي د انسان نفس د هرې تاریکۍ څخــه و رڼا تــه او د هــر هلاکت څخه ونجات ته را باســي، همدا راز انسان ته داسې روحي او معنوي قوت ورکوي چې پر مــټ یې د دنیا او آخرت ســعادت او نیمکرغي لاس ته راوړلای شي.

هغه عبادات چې ســم او پــر طریقه آداء نشــي د انســان پر بدن هیڅ مثبت تأثیر نــه ږدي تنها د انســان لپاره به جســمي مصروفیت او روحي ســتړیا د ځانه سره ولــري نور به هیڅ ګټه ورتــه ونه کړي او هېڅکلــه به دی پر خپل عبــادت باندې خونــد وانخلي ځکه چې د زړه د تله او د الله لپاره نه کېــږي بلکې د مجبوریت پر اساس او د بل هدف لپاره کېږي.

کــه دقت وکړو او په غور باندې وګورو نو دا خبره به له ورایه راته معلومه شي چې: د مســلمانانو د زړونو کلکوالی، په الهي مســؤلیتونو کې ناغېږي او د دښــمن په مقابل کــې ناکامي لــه دې امله ده چې مســلمانانو د خپل دین د لارښوونو څخه فاصلــه نیولــې، د اعمالــو او وینــاوو د مثبت تأثیر څخه محروم شــوي دي او د دین شــعایر ورته کم رنګه شوي دي چې پــه نتیجه کې عبــادات اوس لکه عادات ګرځېدلــي او د یو فرهنګ لــه مخې یې ســرته رســوي نوره دیني تلوسه او عقلي شوق ورسره نشته.

که پــر مســلمانانو بانــدې د دوی نیکو اعمالــو مثبت تأثیر کولای نــو یقیناً به د مځکې پــر مخ یو مثبــت انقلاب راغلی وای، د مځکې مخ به د حق په ښایســت باندې ډک شوی او د باطل څخه به پاک شوی وای خو له بده مرغه چې نن د الله تعالــی د همدې قول پــر بنیاد چې: ظهر الفســاد في البر والبحر بما کسبت ایدي الناس. د مځکې مخ له فساده او ناخوالو څخه ډک شوی دی.

که څه هم پر مســلمان باندې د روژې د فرضیت لپــاره تنها همدغه خبره کافي ده چې روژه د الله تعالی لخوا پر ده باندې فرض کړل شوې ده.

ځکه چــې د الله پــاک د ربوبیت تقاضا هم همداســې ده چې پر خپلــو بندګانو بانــدې د مکلفیت پــوره اختیار او واک لري هر شــی چې پر خپلو بندګانو باندې فرض کــړي څوک د اعتــراض او نیوکې حق نه لري لکه الله جــل جلاله چې په قــرآن کې فرمایي: لَا يُسْــأَلُ عَمَّــا يَفْعَلُ وَهُمْ يُسْــأَلُونَ.ژباړه: د اللــه تعالی څخه د هغه شــي پوښتنه نه کیږي چې کوي یې خو دوی پوښتل کېږي.

او دا زمــوږ عقیده هم ده چې د الله پاک ســره څوک محاســبه نشــي کولای ټوله مخلوقــات خلقا ملکا او عبیــدا یعنې په پیدایښــت، په ملکیت او اســتخدام کې د اللــه تعالــی په واک کــې دی هر ډول تصــرف چې وغــواړي په کــې کوي یې څوک د اعتراض او پوښــتنې حق نه لري.

خــو پــه دې خاطر چــې د اللــه پاک د لارښوونو سره سم انســان د الله پاک په مخلوقاتــو او قدرتونو کې پــه فکر کولو باندې مکلــف دی او د انســان پر نیک او بــد عمل باندې اللــه پاک مزدوري او نتیجــه مرتبه کړې ده او تر بل هر چا الله پاک پر خپلــو بندګانو باندې مهربان دی لکه چــې فرمایي: إِنَّ اللَّهَ بِالنَّاسِ لَرَءُوفٌ رَحِيــمٌ. ژباړه: یقینــاً چې اللــه پاک پر خلکو بښونکی او مهربانه دی.

همدا راز فرمایــي: وَمَا اللَّــهُ يُرِيدُ ظُلْمًا لِلْعَالَمِيــنَ. ژبــاړه: الله پــر مخلوقاتو د ظلم اراده نه لري.

همدا راز فرمایــي: وَاللَّهُ عَزِيــزٌ حَكِيمٌ. ژباړه: الله غښتلی او حکمت والا دی.

همــدا راز فرمایــي: أَفَحَسِــبْتُمْ أَنَّمَــا خَلَقْنَاكُــمْ عَبَثًا وَأَنَّكُمْ إِلَيْنَــا لَا تُرْجَعُونَ. ژباړه: آیا تاســو داســې ګمان کوئ چې موږ تاســې عبث پیدا کړي یاست او موږ ته نه راځئ؟.

نو داســې ویلای شــو چې د دې مبارکې میاشتې روژه:

۱ - د انسان لپاره ثواب دی.
۲- انسان ته تقوی ورباندې حاصلېږي.
۳ - د ګناه څخه انســان ورباندې ســاتل کېږي.
٤ - د انسان صحت ته ګټه لري.
٥ - انســان تــه مــادي او معنــوي قوت ورباندې حاصلېږي.

او باید ځان پوه کړو چې دېته اړتیا شــته چې انســان د عقیدې د درلودلو برسېره د الله پــاک د عباداتو پــه حکمتونو باندې هــم ځان خبر کړي ترڅــو هغو ته خلک دعــوت کــړي او خپله یې هم په شــوق باندې سر ته ورسوي.

**منبع: تحف رمضانیة**

# مسلمانانو ته د یوې ویب‌پاڼې پېغور!

**ژباړه: حسان مجاهد**

یوه فاحشــه ویب‌پاڼه د مســلمانانو ښکاره ســپکاوی کــوي او وایي: «تاســې زموږ غلامان یاســت، او که وغواړئ یا نه بېرته به راګرځئ!»

تر ټولو مشــهوره او فاحشــې ویب پاڼې یو راپــور خپور کړی، چې پکې ویل شــوي، د رمضان په میاشــت کې د دوی ســایټ ته د لیدونکو شــمېر په بې‌ســاري ډول کم شوی دی، او دې کمښت ته یې (دردونکی حالت) نوم ورکړی.

دوی ویلــي، د رمضان پــه لومړیو ورځو کې، پــه مصر، یمن، اردن، او افغانســتان کې د ســایټ لیدنې له ۷۰ ســلنې څخه زیاتې کمې شوې دي.

او الجزایر د ۷۵ سلنې کمښت سره تر ټولو لوړ و، چې دا ویب‌پاڼــه یې «د نه باور وړ کمښت» بولي.

خــو په مراکش کې د نــورو ورځو په پرتله کمښت یوازې ۱۱ ســلنه و، او په ایران کې بیا ۱۴ سلنه کم و.

د لبنــان او مالیزیا په څېر هېوادونو کې هم کمښت لیدل شــوی، خو ډېر نه دی لیدل شوی.

ویب‌پاڼه د مســلمانانو سپکاوی کوي او په تمسخر سره یې لیکلي:

«کــه څــه هــم روژه د روح د پاکوالي او له ګناهونــو څخه د ځان ســاتلو لپاره یوه میاشــت بلل کیږي، خو بیا هم مسلمانان په دغه میاشت کې فاحش فلمونه ګوري! او کېدای شــي روژه ونیســي، خو په هغه ســربېره د فاحشــو فلمونو له کتلو لاس نه شي اخیستلای!»

«که څه هم قــرآن د هغوی قانون دی، خو دوی یــې فاحشــو ویب‌پاڼو تــه له ورتګ څخه نه دي را ګرځولي.»

**د سایټ یو بنسټ‌ایښودونکی وایي:**

«زه د مســلمانانو اخلاص ته حیران یم او دیني اصولــو ته د هغوی لــه ژمنتیا متأثره یم!»

(خــو بیا هم دوی فاحش مواد ګوري، او د روژې ســپېڅلتیا ته نه دي ژمن.) او زیاته یې کړه، چې د سایټ مسؤلین به د فاحشو موادو خپرول نور هم زیات کړي.»

او هغــوی به د دوامداره لیدنــو لپاره خپل ټول قــوت وکاروي ترڅــو دا کار بیا تکرار نشي.»

« ځکه موږ نشــو کــولای د روژې تر پایه انتظــار وباســو، باید همــدا اوس د خپلو موادو خپــرول زیات کړو، تــر څو خلک بېرته راجلب کړو!».

**او بیا یې په مسخره زیاته کړه:**

«د روژې لــه دوو اونیــو وروســته، زموږ لیدونکي بېرته عادي حالت ته راګرځېدلي دي، او د روژې له پای ته رســېدو ســره به نور هم زیات شي!»

او دا هم د حیرانتیا او خندا وړ خبره ده چې ځینې هیوادونه چې اســلامي ځانګړتیاوي لري، خو بیا هم د مــوادو د کتلو په برخه کې په سایټ کې دویم او دریم مقام لري، چې دا د دې ښــکارندویي کــوي چې دا خلک دیني اصولو ته ډېره کمه ژمنتیا لري.

هوکې!

دا څرګندونې په هغو مســلمانانو اســتهزاء کوي چې د رمضان په رارســېدو ســره په ځانونو کــې د بدلون هڅه کــوي او توبه باسي، هغوی ته ګواښونه ورکول کیږي چې دوی به له رمضان وروســته بیرته د فاحشو فلمونو کتلــو ته راګرځــي، او دا یوازې د وخت مسئله ده.

همدارنګه دوی ګواښ کــوي چې په پوره هڅو ســره بــه دا چاره د خپلــو معتادانو/ مینوالو لپاره په هــر وخت کې دوامداره او جالبه وساتي.

**درنو اوریدونکو!**

د فاحشــو فلمونو تولیدو،نکي پوره کوشش کــوي چې تاســو بې لارې کــړي، له الله تعالی ســره ستاســو اړیکه پرې کړي او په تاســو د خپلې خوښې افکار تحمیل کړي، نو تاســو باید فاحشــو ویب‌پاڼو، فلمونو، ډرامو او سریالونو ته له سر وړ ښکاره کولو ډډه وکړئ، اســلامي شریعت موږ له هوسا ژونــد او خوندونــو نه منعه کــوي، بلکې موږ لــه هغو کړنو منعه کــوي چې موږ ته پکې لنډمهاله خوند بریښــي، خو وروسته بیا ستر ســتر زیانونه، عذابونه او خطرناکه پایلې ایجادوي.

# روژه د برکت او رحمتونو میاشت

**مولوي ضیاءالحق حسان / دریمه برخه**

اووم: د روژې په میاشت کې د قرآن کریم تلاوت او ذکر

په روژه کې د قرآن کریم د تلاوت زیاتوالی او د هغه زده کړې ته خاصه توجه مؤکد مستحب عمل دی. د قرآن زده کړه دا ده چې یو او بل ته قران کریم ولولي. د دې استحباب دلیل دا دی چې جبرئیل علیه السلام به هره شپه د رمضان په میاشت کې د رسول الله «ص» سره ملاقات کاوه او ورسره به یې قرآن کریم تکراروه.

د قرآن تلاوت هر وخت مستحب دی، خو په رمضان کې یې فضیلت او تاکید لا زیات دی.

**اتمه: د روژې په میاشت کې د نیکو اعمالو ثواب زیاتېدل**

په روژه کې صدقه ورکول ډېر مهم او د فضیلت عمل دی، لکه څنګه چې د ابن عباس رضي الله عنه حدیث کې ذکر




شوي. دا ځکه چې رمضان له ټولو غوره میاشت ده او پدې میاشت کې خلک د عبادتونو سره بوخت وي، نو د خپل رزق ترلاسه کولو ته کمه توجه کوي، چې له همدې امله د خلکو اړتیاوې زیاتېږي.

همداراز، په رمضان کې نیک عملونه څو چنده ثواب لري.

ابراهیم (رحمه الله) فرمایلي دي: په رمضان کې یو تسبیح ویل د نورو ورځو د زرو تسبیحاتو څخه غوره دي.

**نهم: روژه‌دار ته د روژه‌ماتي ورکول**

زید بن خالد جهني رضي الله عنه روایت کوي، چې رسول الله «ص» وفرمایل: څوک چې روژه‌دار ته روژه‌ماتي ورکړي، هغه ته به هم د روژه‌دار هومره ثواب ورکړل شي، پرته له دې چې د روژه‌دار له اجر څخه څه کم شي.

**لسم: د رمضان په میاشت کې د عمرې فضیلت**

عمره په رمضان کې د نورو میاشتو په پرتله غوره ده، لکه څنګه چې د ابن عباس رضي الله عنه حدیث کې ذکر شوي. رسول الله «ص» فرمایلي دي: په رمضان کې عمره کول د حج برابر حسابېږي.

الموسوعة الفقهیه الکویتیه جلد ۲۳ صفحه ۱٤٦

# ۳۶۰ خبرې

**امین وردګ / شلمه برخه**

**د انسان ښۀ او بد اعمال**

۹۶ یمه خبره- چې ټول ښۀ اعمال مو د خدای له خوا بولئ او بد د شیطان، نو تاسو بیا پۀ جنت او دوزخ کې څۀ کار لرئ؟

**د نورو پر احساساتو لوبې**

۹۷ یمه خبره- هغوی چې د نورو پر احساساتو لوبې کوي احساس یې مړ دی.

**د قبر پر سر ارمان**

۹۸ یمه خبره- زۀ همدا نن لا پوه یم چې سبا بۀ مې قبر ته درېږي او آرمان بۀ کوې، خو بیا دې هم مخ رانه اړولی! چې دا نو ولې؟

**د مړیو عادت**

۹۹ یمه خبره- د مړو انسانانو دا یو عادت عجیبه دی! چې تۀ هرڅۀ ورته وایې دوی چوپ وي او ځواب نۀ درکوي؛ ممکن زموږ خبرې بۀ دوی ته بې ارزښته وي او پۀ ځواب ویلو بۀ نۀ ارزي او کۀ نه، له ډېره غمه خبرې نشي کولی؟ نۀ پوهېږم چې هلته څۀ او دلته څۀ دي؟

**انتقاد**

۱۰۰مه خبره- انتقاد بهترینه اصلاحي وسیله ده، خو هم یې کړل سخت دي او هم یې منل؛ ځکه چې کړل یې جرئت غواړي او منل یې حوصله.

## کشف‌وضبط بیش از ۶ هزار کیلوگرام تریاک در تخار...

در خبرنامه آمده که این مقدار مواد از سوی پولیس مدیریت مبارزه با مواد مخدر قوماندانی امنیه ولایت تخار در شهر تالقان کشف‌وضبط شده است.

وزارت امور داخله افزوده که در پیوند به انتقال این محموله بزرگ مواد مخدر ۲ تن نیز بازداشت شده‌اند.

این در حالی است که مبارزه منسوبین مبارزه با مواد مخدر وزارت امور داخله مورد ستایش کشورهای همسایه نیز قرار گرفته است.

## د جګړې او دښمنۍ لامل څوک...

ځکه انګریزان ولاړل او دوی زموږ پر خاوره هماغسې قابض پاتې شول بل وار کله چې انګریزانو په (۲۰۰۱) میلادي کال بیا هم پرافغانستان یرغل وکړ نو همدغه پاکستاني پوځ هغوی ته هوایي او ځمکنۍ لارې ورکړې او خپلو عسکري اډوکې یې ځایونه ورته چمتو کړل چې ترشلو کلو یې د هماغو صلیبي کفارو مرسته کوله او د جګړې لومړۍ کرښه کې د مقاومت کولو امتیازات یې ترې اخیستل، دا د پاکستاني واکمنو دویم لوی تېری شو- همدې وخت کې دوی د هماغه انګرېز په مرسته فرضي کرښه په فزیکي کرښې بدله کړه، جالونه، دېوالونه او خندقونه یې په کې جوړ کړل پاسپورټ او ویزه کې لازمي کړل- بیا چې کله صلیبي ځواکونه ولاړل او افغانانو خپلواکي تر لاسه کړه نو انګرېزانو خپله دنده بیا هم خپل حلیف پوځ ته وسپارله او دایې پرې ومنله چې افغانان به جنګ او تاوتریخوالي کې مصروف ساتي او پرمختګ ته به یې نه پرېږدي لنډه دا چې هیڅ عاقل به دا ونه مني چې اوسني جګړه ځپلي افغانان دې لا هم په لوی لاس د نورو جګړو غوښتونکي وي- بناءً کرښې ته څېرمه د لارو بندول او تاوتریخوالی منځ ته راوړل د پاکستاني واکمنو کار دی او باید هلته په دوه سوه میلیونه مسلمانانو کې دومره څوک پیدا شي چې د خپلو واکمنو مخه ونیسي.

# افغان اعلانات

**اعلان داوطلبی (۶) جایداد امارتي واقع نواحی مختلف شهر کابل!**

ریاست عمومی املاک دولتی وزارت مالیه (۶) جایداد امارتی ذیل واقع ناحیه اول، چهارم، پنجم، دهم و یازده هم شهر کابل را به شکل آفربسته طور جداگانه به اعلان داوطلبی می سپارد.

۱-یک باب غرفه نمبر(۲۹) به مساحت(۲٫٤) مترمربع واقع منزل اول تعمیر(١٤) منزله سینما پامیر مربوط ناحیه اول شهر کابل به کرایه ابتدائی ماهانه مبلغ(۳۳۳۰۰) افغانی، برای مدت(۳) سال.

۲- یک باب غرفه نمبر(۲۲) به مساحت (۵٫۰٦) مترمربع واقع منزل اول تعمیر(١٤) منزله سینما پامیر مربوط ناحیه اول شهر کابل به کرایه ابتدائی ماهانه مبلغ(٦١٠٠٠) افغانی، برای مدت(۳) سال. کوردینات(جی.پی.اس نمبر) ٦۹٫۱۷۲۱۹ -۳٤٫٥۱۳٤۲

۳- باب دکاکین مغازه نمبر ۱۰ واقع لیسه مریم به مساحت (۲٦۸) مترمربع مربوط ناحیه(۱۱) شهر کابل به کرایه ابتدائی ماهانه مبلغ(٦٤۳۲۰) افغانی، برای مدت (۱) سال. کوردینات(جی.پی.اس نمبر) ٦۹٫۱۳۸۹۸ - ۳٤٫٥۷۸۹۲

٤- یک دربند حویلی (٤) اطاقه بدون کلکین به مساحت (۲۸۱٫۸۷) مترمربع ویک حلقه چاه آب که اطاق آن در پیاده رو موقیعت دارد به مساحت (۲۷٫٦٦) مترمربع واقع کوچه (١٤) پروان سوم مربوط ناحیه (٤) شهر کابل به کرایه ابتدائی ماهانه مبلغ(٦۳۰۰) افغانی، برای مدت(۳) سال.

کوردینات(جی.پی.اس نمبر) ٦۹٫۱۳۱٥۳ -۳٤٫٥٤۳٦۲

٥- موازی(۳۰۰) مترمربع زمین بنام چاه عمیق واقع خوشحال خان مینه مربوط ناحیه پنجم شهر کابل به کرایه ابتدائی ماهانه مبلغ(۹۳۳۳) افغانی، برای مدت (۳) سال.

کوردینات(جی.پی.اس نمبر) ٦۹٫۱۱۸٦۲- ۳٤٫٥۲۳۸۰

٦-یک باب آپارتمان نمبر (۲۲) دارای چهار باب اطاق، تشناب و آشپز خانه واقع چهارراهی سلیم کاروان منزل ٦ بلاک ۱۱ مربوط ناحیه۱۰ شهر کابل به کرایه ابتدائی ماهانه مبلغ (۷٥۰۰) افغانی، برای مدت (۳) سال.

کوردینات(جی.پی.اس نمبر) ٦۹٫۱٦۰٥٥- ۳٤٫٥٥٥۹۹

اشخاص حقیقی و حکمی که خواهان به کرایه گرفتن جایداد های فوق الذکر را داشته باشند میتوانند درخواست های شان را بعد از تاریخ ۱۵ / حوت/ ۱۴۰۳ الی ۲۱/ حوت/ ۱۴۰۴ به ریاست عمومی املاک دولتی تسلیم نموده شرطنامه را اخذ نمایند.

آدرس:سینما پامیر تعمیر١٤منزله، منزل٥، مدیریت عمومی ارزیابی قرار دادهای مرکز.

شماره تماس-۰۲۰۲۹۲٤٦۲٤-۰۲۰۲۹۲٤٦۰۷.

مجلس داوطلبی تاریخ ۲۲حوت ۱۴۰۳ به ساعت ۱۰:۰۰قبل از ظهر برگزار میگردد

***

**اطلاعیه کندز**

ریاست شاروالی خان آباد در نظر دارد در سال ۱۴۰۴ جمع آوری عواید مسلخ و یا کشتارگاه مال مواشی و حوض آببازی پارک باغ عمومی شهر خان آباد را برای مدت یک سال عقد قرار داد نماید. آنعده اشخاص و افرادیکه خواهش اشتراک در مجلس داوطلبی را داشته باشند از نشر اعلان الی مدت ۲۱ یوم درخواست های شان را به ریاست شاروالی خان آباد سپرده و خود شان به روز داوطلبی در مقر ریاست شاروالی خان آباد حاضر شوند ، شرطنامه را میتوانند ملاحظه نمایند و تامینات نقدا اخذ میگردد. ۷۸۷

***

**موضوع: نشر اعلان داوطلبی تانک تیل امارتی نمبر ۱۵ بوغابی ولایت بغلان:**

(( شرکت امارتی نفت و گاز افغانستان، تانک تیل امارتی نمبر ۱۵ بوغابی ولایت بغلان ملکیت خویش را بطور قرار داد به کرایه میدهد، افراد، اشخاص و شرکت های که خواهش قرار داد را داشته باشند با ارائه درخواستی شرطنامه داوطلبی تانک مذکور را اعتبار از تاریخ نشر اعلان هذا الی (١٤) روز تقویمی از آمریت نفت و گاز ولایت بغلان و یا از دفتر مرکزی شرکت امارتی نفت و گاز افغانستان واقع کوتل خیرخانه بدست آورده خودشان به روز معینه جهت اشتراک در جلسه آفرگشائی مراجعه نمایند. برطبق شرطنامه تأمینات اخذ میگردد.))

## یوناما ملګرو ملتونو کې د افغانستان...

ذهنیت رامنځته کړي.

ښاغلي مجاهد زیاته کړې، یوناما د دې پر ځای چې د افغانستان په اړه نړۍ ته قانع کوونکی ځواب ورکړي، خو د دوی ناسم راپورونه د دې لامل شوي، چې ورځ تر بلې د افغانستان په اړه ناسم ذهنیت حاکم شي.

نوموړي ټینګار کړی، یوناما تل د افغانستان په واقعیتونو سترګې پټې کړې او تل یې هڅه کړې چې منفي موارد پیدا کړي، چې دا کړنه د افغانستان، ملګرو ملتونو او خپله د یوناما په ګټه نه دي.

د یادونې ده، چې روانې مارچ میاشت کې په افغانستان کې د یوناما ماموریت پای ته رسېږي، چې د بیا تمدید لپاره یې د ملګرو ملتونو امنیت شورا ناسته کوي.

## فعالیت کارخانه قند بغلان رسماً...

کار بازسازی کارخانه قند ولایتی بغلان به‌عنوان کارخانه تولیدی دولتی سال گذشته زیر چتر شرکت‌های امارتی با حضور مقامات دولتی رسماً آغاز شده بود.

## میمنه کې ۱۲ شنې خونې ګټې اخیستو...

سفارت په مالي ملاتړ د ۲ میلیونه افغانیو په لګښت پلې شوې ده.

دا شنې خونې د فاریاب د مرکز میمنې سربېره په پښتونکوټ، دولت اباد، قیصار او المار ولسوالیو کې جوړې شوې دي.

د سیمې اوسېدونکو ددې شنو خونو په جوړېدو خوښي ښودلې او په وینا چې اوس به د کال په ټولو موسمونو کې کرکیله کوي.

## کار پروژه تاپی در داخل کشور...

گفتنی‌است که پروژه تاپی به‌عنوان بزرگ‌ترین پروژه منطقه‌ای (انتقال پایپ‌لاین گاز) ترکمنستان از طریق افغانستان به پاکستان و هند در ولایت هرات در حال ساخت است.

## اقتصادي کمېسیون د معدني توکو...

د د ریاست‌الوزراء اقتصادي معاونیت د خبر له مخې، د هلمند ولایت په ښوراب ملکي هوایي ډګر کې د شته سرې خونې د فعالولو په اړه هم پرېکړه شوې، چې اړوند وزارت دې د یادې سرې خونې د فعالولو لپاره وړ شرکت په ګوته او قرارداد دې د منظورۍ په موخه اقتصادي کمېسیون ته وړاندې کړي.

## کونړ کې د ډبرین دېوال او کانکریټي...

او د ۲۰ متره کانکریټي سړک د رغونې چارې عملا پیل شوې دي.

یاده دې وي، چې د دې پروژو په بشپړېدو سره به د کونړ - نورستان عمومي سړک لورې ته د سیند غاړه مستحکمه او د یاد سړک له تخریب څخه به هم مخنیوی وشي.

## کابل ښاروالۍ نوې نرخنامې...

نسبي زیاتوالی د ډالرو پر وړاندې د افغانیو ارزښت کمېدلو له امله ګڼې کابل کې هر کال دروژې په را رسېدو د توکو نرخونه پورته ځي او سږکال هم خلک له ورته حالت څخه اندېښنه لري. هېوادوال له اړوند ادارو پر بازارونو د څار غوښتنه کوي.

## د دفاع وزارت له پوځي او مسلکي...

«ابم ۲، ابم ۲۴، ابس‌پي‌جي-۹» هاون او سرحدي پیاده کورسونو له څلور میاشتنیو مسلکي زده‌کړو او عملي تطبیقاتو وروسته د یو لړ مراسمو په ترڅ کې فارغ شوي دي.

یاده دې شي، چې دا فارغان به د خپلو لاسته راوړل شویو پوځي او مسلکي زده‌کړو په مټ د هېواد دفاعي ځواک لا پیاوړی کړي.

## آغاز توزیع پول عصریه برای...

بربنیاد اعلام کمیته المپیک، تربیت بدنی و ورزش کشور، به هر ورزشکار مبلغ ۱۳ هزار و ۲۰۰ افغانی در یک سال پرداخته می‌شود.

مولوی احمدالله وثیق، رییس عمومی المپیک، تربیت بدنی و ورزش کشور در این مراسم گفت، امارت اسلامی متعهد به حمایت از ورزشکاران است.

آقای وثیق تاکید کرد که تلاش خواهند کرد تا سهولت‌های متعدد را برای ورزشکاران در کشور فراهم کنند.

او از شفافیت در روند توزیع توزیع به ورزشکار نسبت به هرزمان دیگر اطمینان داد.

## از ۳ سال بدینسو از قطع جنگلات...

جنگلات در این ولایت از سوی کارمندان این آمریت و کمیسیون‌های جلوگیری از قطع جنگلات بگونه کامل نظارت صورت می‌گیرد.

پنجشیر از ولایت‌های کوهستانی در شمال کابل است که دارای جنگلات وافر طبیعی می‌باشد.

Shariat
Daily

Shariat
Published by
Islamic Emirate of Afghanistan
Eng, Uzair Baryaly ، Director of Gov.dailies
0202526340
Chief Editor : Farooq Ghaljai/ 0778635852
Email: info@shariatdaily.com
WWW.shariatdaily.com ویب سایت:

شریعت
د دولتي ورځپاڼو رئیس:
انجنیر عُزیر بریالی / ۰۲۰۲۵۲۶۳۴۰
مسئول مدیر: فاروق غلجی/ ۰۷۷۸۶۳۵۸۵۲
مسئول سکرتر: خالد افغان/ ۰۷۷۳۰۶۲۸۳۲
د شریعت برښنا لیک: info@shariatdaily.com
پته: اتمه ناحیه، د المپیک څلور لارې، د حضوري چمن ختیځ، کابل ـ افغانستان
**شماره توزیع و شکایات:** ۰۲۰۲۳۱۲۵۰۹ / ۰۷۶۶۰۴۴۹۶۶/ ۰۷۳۱۶۰۶۰۷۳

Wednesday 05 March 2025 / Established: 1995 / 2nd Season / Vol: 699

**مجاهد:**
# یوناما ملګرو ملتونو کې د افغانستان په اړه ناسم ذهنیت رامنځته کړی



د افغانستان اسلامي امارت ویاند مولوي ذبیح الله مجاهد د رواني مارچ میاشت کې د افغانستان په اړه د ملګرو ملتونو امنیت شورا غونډې په غبرګون کې ویلي، افغانستان کې لکه څرنګه چې لازم و د ملګرو ملتونو سیاسي استازولۍ یا یوناما فعالیت ګټور نه دی.

مولوي ذبیح الله مجاهد رسنیو ته په استول شوي غږیز کلیپ کې ویلي، یوناما تل له خپل ادرسه د افغانستان په اړه منفي راپورونه وړاندې کړي او په ملګرو ملتونو کې یې د افغانستان په اړه ناسم... **۳مخ**

## فعالیت کارخانه قند بغلان رسماً آغاز شد



مقام‌های محلی ولایت بغلان محلی می‌گویند، فعالیت‌های تولیدی کارخانه قند بغلان عملاً آغاز شده است.

داکتر نجیب‌الله دوراندیش، رییس اجراییوی کارخانه تولیدی قند بغلان گفته که این کارخانه پس از اتمام کار بازسازی تولیدش را آغاز کرده است.

به گفته آقای دوراندیش با آغاز رسمی فعالیت تولیدی کارخانه قند بغلان، در یک شبانه‌روز ۷۰۰ تا ۸۰۰ تُن شکر تولید خواهد شد.

رئیس اجراییوی کارخانه قند بغلان افزوده که با فعالیت رسمی این کارخانه زمینه اشتغال برای ده‌ها تن بگونه مستقیم و برای صدها تن بگونه غیرمستقیم فراهم شده است. **ص۳**

## ننګرهار کې پر نورو اسعارو راکړه ورکړه بنده شوه

د ننګرهار سرپرست والي مسوولینو ته د یوې ځانګړې ناستې په ترڅ کې امر کړی، چې په پاتې محدودو سیمو کې هم د راکړې ورکړې پرمهال د پاکستانۍ کلدارې د کارونې مخنیوی وکړي او افغانۍ په بشپړ ډول ترویج کړي.

نوموړي ویلي، چې شینواري، سپین غر، اچین، لعلپوره، مومندره، نازیان او دوربابا هغه ولسوالۍ دي، چې د کلدارو چلند پکې محدود دی، خو باید په بشپړ ډول یې مخنیوی وشي او ټوله راکړه ورکړه په افغانیو ترسره شي.



## د پاکستان له زندانونو لسګونه تنه ازاد شوي

د کډوالو او بېرته راستنېدونکو چارو وزارت وایي، چې د پاکستان له زندانونو خوشې شوي ۴۷ تنه افغان کډوال بېرته هېواد ته راستانه شول. دغه وزارت ویلي، خوشې شوي کسان د سپین بولدک لـه لارې هېواد ته راستانه شوي. یاد وزارت په یوې خپرې کړې خبرپاڼه کې ویلي، چې دغه کسان د قانوني اسنادو د نه لرلو په تور د پاکستان په بېلابېلو برخو کې نیول شوي وو. خبرپاڼه زیاتوي، دغه کسان شاوخوا ۴۵ ورځې بندیان وو، چې د بشري مرستو د ترلاسه کولو وروسته خپلو اصلي ځایونو ته ولېږدول شول.



## کشف‌وضبط بیش از ۶ هزار کیلوگرام تریاک در تخار از سوی وزارت داخله




وزارت امور داخله می‌گوید، نیروهای پولیس موفق شده‌اند تا ۶ هزار و ۲۹۹ کیلوگرام مواد مخدر را در مربوطات ولایت تخار کشف‌وضبط کنند.

به گفته وزارت امور داخله، مواد مخدر یادشده از نوع تریاک بوده و در یک عراده تانکر گاز طور ماهرانه جاسازی شده بود. **ص۳**

## قلات کې د اجباري ودونو او بدو کې د نجونو د ورکړې مخنیوی شوی

د زابل د امر بالمعروف نهي عن المنکر او شکایتونو اورېدلو ریاست مسئولینو ویلي چې دې ولایت کې یې د روان کال په لړ کې د ۱۳۱ هغه مېرمنو او نجونو د نکاح ګانو مخنیوی کړی چې په زور او یا په بدو کې ورکول کېدې.

د یاد ریاست رییس ویلي، چې د زابل په مرکز قلات او ولسوالیو کې د ۱۲۰ جبري ودونو او په بدو کې د ۱۱ ښځو د ورکړې مخنیوی شوی دی.

نوموړي زیاته کړې، چې د ښځو د میراث ۱۴ قضیې او ۵۸ د روغې جوړې قضیې هم حل شوې دي.

د راپور له مخې، د ۱۴۰۳ کال په جریان کې ۱۰۳ شکایتونه ثبت شوي، چې له دې ۴۲ یې حل شوي، ۳۳ یې قضایي ارګانونو ته سپارل شوي، ۲۲ یې رد شوي او ۴ نور یې تر څېړنې لاندې دي.

## میمنه کې ۱۲ شنې خونې ګټې اخیستو ته وسپارل شوې

د فاریاب د کرنې، اوبولګولو او مالدارۍ ریاست مسئولینو په دغه ولایت کې د ۱۲ شنو خونو د جوړېدو او ګټې اخیستو خبر ورکړی دی.

ددې ولایت د کرنې او مالدارۍ ریاست مسئولینو ویلي چې یاده پروژه د ناروې ... **۳مخ**






## امریکا اوکراین ته خپلې پوځي مرستې وځنډولې




د امریکا متحده ایالتونو ولسمشر ډونالډ ټرمپ تېره ورځ پرېکړه کړې، چې اوکراین ته خپلې ټولې پوځي مرستې وځنډوي.

رویټرز د پوځي مرستو د ځنډ خبر د سپینې ماڼۍ د یوه چارواکي له قوله ورکړی دی.

فاکس نیوز شبکې د ټرمپ د ادارې د یوه چارواکي په حواله راپور ورکړی، چې امریکا دا مرستې دایمي نه، بلکې لنډمهاله ځنډولې دي.

دا په داسې مهال ده ټرمپ له دې وړاندې په زیلینسکي فشار زیات کړ، چې د جګړې درولو لپاره یوې هوکړې ته ورسېږي.

## مسکو: د سولې لپاره خپل شرطونه لرو



روسیه وایي چې له اوکراین سره سوله کوي، خو د سولې خبرو کې به خپل شرایط ولري او په هېڅ ډول به چا ته خپلې ځمکې ورنه کړي.

دغه هېواد همداراز اوکراین ته د اروپايي ټولنې له لوري د سوله‌ساتو ځوکونو له لېږد سره هم مخالفت ښودلی دی.

روسیې ټینګار کړی چې اوکراین سره د اروپايي ټولنې پوځي مرستې به د سولې خبرو دروازه وتړي او په وینا یې، خپلې جګړې ته به دوام ورکړي.

دغه غونډه وروسته له هغې وشوه چې سپینه ماڼۍ کې د زېلېنسکي او ډونالډ ټرمپ غونډه پر لفظي شخړې او ناندریو واوښته.

اوکراین وایي، د جګړې پای ته رسول غواړي، خو په وینا یې، امنیت تظمین ورکړل شي چې روسیه به بیا پر دغه هېواد برید نه‌کوي.

## امریکا تحریم‌ها بر روسیه را کاهش می‌دهد




بربنیاد گزارش‌ها، دونالد ترامپ، رئیس جمهور امریکا، دستور داده میزان تحریم‌های این کشور بر روسیه کاهش یابد.

رئیس جمهور امریکا به وزارت‌های خزانه‌داری و امور خارجه این کشور دستور تا داده تا شماری از تحریم‌ها وضع شده بر روسیه را که می‌توان کاهش فهرست کنند.

در این گزارش هدف از کاهش تحریم‌های امریکا بر روسیه، بهبود روابط میان واشنگتن و مسکو گفته شده است.

همچنان پایان دادن به جنگ اوکراین از دیگر اهداف کاهش تحریم‌های امریکا بر روسیه گفته شده است.

گفتنی است که پس از آغاز کار دولت جدید امریکا به رهبری دونالد ترامپ، سیاست این کشور در قبال روسیه نسبت به دولت اسبق این کشور تغییر کرده است.